غوره وېناوي

**امام الزهري:**
د روژې په میاشت کې یو وار تسبیح ویل، تر زرو تسبیحو غوره دي، چې بې له روژې وویل سي.

# طلوع افغان

نبوي مرغلري

**رسول الله (ص) فرمايلي دي:**
ژباړه: زموږ او د اهل کتابو د روژې توپير په پیشلمي سره دی، یعني موږ پیشلمی کوو او هغوی یې نه کوي.
﴿رواه المسلم﴾

د امتیاز څښتن:
د کندهار اطلاعات او فرهنګ ریاست

مؤسس: مولوي صالح محمد "هوتک"

په اوونۍ کې دوه واره چاپېږي

د تأسيس کال: ۱۳۰۰ لمريز، چهارشنبه ۵/رمضان المکرم/۱۴۴۶ هـ ق، ۱۵/کب/۱۴۰۳ ل کال – ګڼه (۷۴)
Wednesday-5-March-2025 Issue: 74


## د څه کم درو میلیونو افغانیو په لګښت په کندهار کې د یوې پروژې چاري پیل سوې

د اوبو او انرژۍ وزارت، په کندهار کې د څه باندي ۲۹میلیونو افغانیو په لګښت، د یوې پروژې چارو د پیل کېدو خبر ورکړی دی. باختر آژانس ته د یاد وزارت د معلوماتو له مخې،

د کندهار ولایت د لوړ میوند ولسوالۍ په قبات کلي کې د یو کانال، استنادي دېوال، اتو پلګوټو او د اوبو د دوو لویو او کوچنیو کنټرولي دروازو د جوړولو پروژې چاري د څه باندي ۲۹ میلیونو ۱۸۲ زره افغانیو په لګښت پیل سوي دي.

ویل سوي چې یاد کانال د اووه کېلو متره او استنادي دېوال د ۶۳متره په اوږدوالي جوړېږي او چاري به یې د اتو میاشتو په موده کي بشپړې او ګټي اخیستني ته وسپارل سي.

د دې پروژې د چارو په بشپړېدو سره به د کانال د ویجاړېدو او د اوبو د ضایع کېدو د مخنیوي تر څنګ، د کرهنې په برخه کې د خلکو ستونزې هواري سي.

پاته دې نه وي، یادې چاري د ملګرو ملتونو
۴مخ

## د مطالبو سرليکونه



د طلوع افغان خبري (سرليکنه)

## په افغانستان کې د امریکایي پاته وسلو په اړه د ټرمپ څرګندوني خیالي دي

په ۲۰۲۱ مېلادي کال کي د امریکا تر شل کلن اشغال وروسته، د افغانستان اسلامي امارت د هیواد کنټرول په خپل لاس کي واخیستی.

د دې تاریخي فتحې له مهمو پایلو یوه دا وه، چې امریکایي پوځیانو د تېښتې پر مهال؛ نظامي تجهیزات، وسلې، زغروال موټر، الوتکي او مهمات شاته پرېښوول.

اسلامي امارت دا وسلې د یو مشروع غنیمت په توګه یادوي، چې د دوی د مبارزې او قربانیو پایله ده.

خو د امریکا ولسمشر ډونالډ ټرمپ هڅه او دا دعوه کوي، چې ګواکي دوی لا هم د دې وسلو پر مالکیت حق لري، هغه ادعا چې نه یوازې غیر منطقي ده، بلکې له نړۍوالو اصولو او له اسلامي شرعي ارزښتونو سره هم ټکر لري.

د اسلامي امارت مجاهدینو له یوې نړۍوالي، استعماري او اشغالګري قوې سره جګړه وکړه او په اسلام کي واضح احکام سته، چې که مسلمانانو له کفارو وسلې، مالونه یا تجهیزات تر لاسه کړل، نو دا غنیمت بلل کېږي.

الله تعالی د سورة الانفال په ۴۱ نمبر آیت کې فرمایي:

ژباړه: او تاسو ته دې معلومه وي، د غنیمت مال چې تاسو په لاس راوړی دی، د هغه پنځمه برخه د الله، د هغه د پیغمبر، د خپلو خپلوانو، یتیمانو، مسکینانو او د مسافرانو له پاره ده.

د دې آیت شریف له مخې، د کفارو له پوځونو تر لاسه سوي وسلې د اسلامي دولت ملکیت ګڼل کېږي او باید د اسلامي نظام د بقا، ثبات او د مسلمانانو د عامه ګټو له پاره وکارول سي، چې اسلامي امارت دغه کړنه تر سره کوي.

په نړۍوالو جنګي اصولو کي هم داسي بېلګي سته، چې کله یو ځواک د بل ځواک نظامي تجهیزات نیسي، نو دغه تجهیزات د فاتح ځواک ملکیت ګڼل کېږي.

امریکا د دوهمي نړۍوالي جګړې پر مهال، د جرمني او جاپان د پوځونو څخه ګڼ تجهیزات ضبط کړي وو او هغوی ته یې بېرته نه ورکول، اوس چې اسلامي امارت یو مستقل حکومت دی، نو دا وسلې د دوی ملکیت دی، نه د امریکا.

امریکا او د دوی لاسپوڅي هڅه کوي، چې دا مسئله داسي ښکاره کړي، ته وا اسلامي امارت ناځاپه د دې وسلو مالک سو، خو حقیقت دادی چې اسلامي امارت دوې لسیزې متواتر قربانۍ ورکړې، زرونه شهیدان یې ورکړل، اقتصادي ستونزې یې وزغملې او بالاخره یې اشغال ته د پای ټکی کېښېښاوه او د اشغالګرو د ماتولو تر څنګ یې دغه غنیمتونه و نیول.

د افغانستان مسلمان ولس د قربانۍ یو ستر تاریخ لري، چې د اشغال پر ضد یې د خپلې خاورې دفاع کړې، نو دا وسلې د اسلامي امارت د قربانیو ثمره ده او باید د هیواد د ثبات، امنیت او دفاع له پاره وکارول سي.

واشنګټن په ظاهره وایي، دا وسلې د سیمې د امنیت له پاره خطر لري، خو اصلي دلیل یې دادی چې دوی نه غواړي، افغانستان یو قوي اسلامي نظام ولري.

اداره

## د خرما او مالټو نیالګیو کښېنولو چاري پیل سوې

د هلمند او فراه ولایتونو د کرهنې، اوبو لګولو او مالدارۍ ریاستونو مسئولینو ویلي، په دې ولایتونو کي د مالټو، خرما او زیتونو د بڼونو جوړولو چاري پیل سوي دي.

د هلمند د کرهنې، اوبو لګولو او مالدارۍ ریاست مسئولینو ویلي، په مرکز لښکرګاه او یو شمېر ولسوالیو کي د مالټو بڼونو د جوړولو چاري پیل سوي دي.

د هغوی په قول
۴مخ

## د بورې فابریکه بیرته فعاله او د تولید بهیر یې رسمًا پیل سو

د بغلان ولایت د بورې فابریکه چې له اوږدې مودې بنده وه، تر بیارغوني وروسته بیرته فعاله او د تولید بهیر یې رسمًا پیل سو.

د بغلان والي مولوي عبدالرحمن حقاني د فابریکې د بیا پرانیستني په مراسمو کي ویلي، دا فابریکه د هیواد یوه ملي سرمایه ده او د فعالیت له بیا پیل سره به نه یوازې ځوانانو ته کاري زمینه
۴مخ

## دوې کوڅې جوړې او ګټې اخیستني ته وسپارل سوې

کندهار ښاروالۍ د خپلو انکشافي کارونو په لړ کي د ښار په دوهمه ناحیه، کاریز بازار کي دوې کوڅې جوړې او ګټې اخیستني ته وسپارلې.

د کندهار ښاروالۍ ویاند سیف الله عاصم ویلي، یادې کوڅې ۴۵۰ متره اوږدوالی او ۷ متره پلنوالی لري او رغنیزې چاري یې د یوې میاشتي په دوران کي بشپړې سوي، چې هره ورځ په کښې ۲۵ کسان په فني او غیر فني ډول په کار کولو بوخت ول.

## د کوکنارو له کښته اته جریبه مځکه پاکه سوه

د کندهار ولایت د امنیې قوماندانۍ ویاند ملا اسد الله جمشید ویلي، د تېرې یوې اوونۍ په موده کي، په دې ولایت کي اته جریبه مځکه د کوکنارو له کښته پاکه سوې او پر همدې مهال د کندهار ښار د مختلفو ساحو څخه ۹۰ تنه په نشه یي توکو روږد کسان را ټول او اړوندو روغتیایي ارګانونو ته د تداوۍ په موخه معرفي سوي دي.
۴مخ

## په کندهار کې دوه تنه د غلا په تور نیول سوي دي

د کندهار ښار د شپږمې حوزې امنیتي ځواکونو دوه تنه د یو میل توپنچې او یوې عرادې موټر سایکل سره د غلا په تور نیولي دي.

د امنیې قوماندانۍ ویاند ملا اسد الله جمشید ویلي، د نیول سوو کسانو څخه یې یو تن څه موده وړاندې د کرم کلاچې په ساحه کي د یو میل توپنچې سره او دوهم تن یې د مالجات په ساحه کي د یوې عرادې غلا سوي موټرسایکل سره لاس په لاس نیول سوي دي.

## د ځان بسیاینې له پاره میلیونونه افغانۍ نغدې مرسته سوې

د افغاني سرې میاشتي ټولنې، په کندهار ښار او ولسوالیو کي د ځان بسیاینې په موخه، څلور میلیونه افغانۍ نغدې مرسته کړې ده.

د کندهار د سرې میاشتي ریاست ویاند محمد شعیب آغا ویلي، یاده مرسته په میوند او ژړۍ ولسوالیو او کندهار ښار ۲۰۰ مستحقو کورنیو ته د ځان بسیاینې او کوچني کارونو د ملاتړ په موخه تر سره سوې ده.

د ټاکل سوي پلان له مخې هري کورنۍ ته په لومړي پړاو کي ۲۰ زره افغانۍ او په دوهم پړاو کي د اړتیا په صورت کي به هري کورنۍ ته ۱۵ زره افغانۍ ورکول کېږي.

## بيلابيل موضوعات

# د دوحې تړون لکه د حديبيې تړون

ليکنه او زياتونه: احمد "خاطري"

لکه څنګه چي خوږ پيغمبر صلی الله عليه وسلم د هجرت په شپږم کال د ذوالقعدې په مياشت کي تر هغه خوب ليدلو وروسته (چي مکې مکرمې ته تللی وي او پر کعبې شريفې طواف کوي) د ۱۵۰۰ صحابه کرامو رضی الله عنهم په ملګرتيا په داسي حال کي د خپل اصلي وطن (مکې مکرمې) پر لور د عمرې ادا کولو په نيت روان سو چي کلونه – کلونه يې د خپل خوږ وطن هجران تېر کړی او بيا ليدلو او ورتللو ته يې زياته لېوالتيا او تلوسه درلوده.

له ځان سره يې د قرباني هديه (اوښه) روانه کړې او د عمرې احرام يې هم تړلی و، ترڅو د مکې مکرمې خلک پوه سي چي پيغمبر صلی الله عليه وسلم د کعبې شريفې د زيارت او عظمت له پاره راوتلی، نه د جنګ له پاره.

پيغمبر صلی الله عليه وسلم تر ځان مخکي مکې مکرمې ته د قريشو د احوال معلومولو له پاره يو کس لېږلی و، چي عسفان ځای ته په نژدې کېدلو هغه کس بېرته راستون او حال يې راوړ چي قريش او مشرکان د جنګ له پاره تياری کوي، ترڅو پيغمبر صلی الله عليه وسلم او ملګري يې د عمرې څخه منع کړي، کله چي پيغمبر صلی الله عليه وسلم حديبيې ته ورسېدی، سمدستي يې عثمان بن عفان رضی الله عنه قريشو ته د دې له پاره ور ولېږی، هغوی خبر کړي چي موږ د جنګ نه، بلکي د عمرې ادا کولو له پاره راغلي يو، د پيغمبر صلی الله عليه وسلم او قريشو ترمنځ څو استازي ولاړه او راغله، پيغمبر صلی الله عليه وسلم به هر يوه ته ويل: موږ د جنګ نه، بلکي د عمرې له پاره راغلي يو، خو قريشو د خپل عناد په وجه پيغمبر صلی الله عليه وسلم او ملګري يې د عمرې له ادا کولو منع کړل، وروسته د قريشو او پيغمبر صلی الله عليه وسلم ترمنځ، د مذاکراتو په پايله کي يو تړون لاسليک سو چي د (حديبيې صلحه) په نامه يادېږي، په ياد تړون کي د نورو مادو تر څنګ، پر دې خبره هم موافقه سوې چي اوس به عمره نه کوي، بلکي را روان کال به پيغمبر صلی الله عليه وسلم او ملګري د عمرې ادا کولو له پاره مکې مکرمې ته راځي، درې ورځي به تېروي او دوی به لس کاله يو تر بله جنګ هم نه کوي، کله چي د تړون متن د علي رضی الله عنه په لاس وليکل سو، پيغمبر صلی الله عليه وسلم خپله هديه حلاله او احرام يې خلاص کړ او له خپلو ملګرو سره بېرته مدينې منورې ته ستون سو.

د دې تړون شرطونه که څه هم ظاهراً ځوروونکي او نه زغمونکي وو، خو صحابه کرامو رضی الله عنهم د خپل ايماني قوت او د پيغمبر صلی الله عليه وسلم د سختي پيروۍ په خاطر، دا هر څه وزغمل، نتيجه يې دومره مثبته او لويه راووتل، چي نه يوازي دا چي په جزيرة العرب کي د اسلام د خپرېدو او د مکې مکرمې د فتحې دروازه پرانيستل سوه، بلکي د نړۍ پاچهانو ته د اسلام د پيغام رسولو له پاره يو نوی باب پرانيستل سو.

پيغمبر صلی الله عليه وسلم د دې تړون څخه په استفادې د نړۍ پاچهانو او عرب اميرانو ته لکه: د روم امپراطور هيرقل، د فارس امپراطور کسری پروېز، د حبشې پاچا نجاشي او د مصر پاچا مقوقس ته خطونه واستول، هغوی يې اسلام او د خپل رب جل جلاله لاري ته په خورا حکيمانه او ښايسته انداز دعوت کړل.

لنډه دا چي د حديبيې تړون د اسلام د زرينو وړانګو په خپرېدو او د مکې مکرمې په لويه فتحه منتج سو، لکه الله جل جلاله چي د دې تړون تر لاسليک وروسته دا اياتونه نازل کړل:

ژباړه: اې پيغمبره! بې شکه موږ تا ته ښکاره فتحه او بری درکړی دی...

همدا ډول د نن څخه پنځه کاله وړاندي د ۱۳۹۸ل کال د حوت مياشتي پر لسمه نېټه، د غربي يرغلګرو (امريکا متحده ايالاتو) او د افغانستان اسلامي امارت ترمنځ، د قطر هيواد پلازمېنه دوحه کي د اتلس (۱۸) مياشتي مذاکراتو په پايله کي د غربي يرغلګرو د ماتې او د اشغال د خاتمې تړون د قطر هيواد پلازمېني دوحې په شېراټون هوټل کي، د تاريخي مراسمو په لړ کي لاسليک سو.

۴مخ

# د روژې ځيني روغتيايي ګټې

ژباړه او زياتونه:
مولوي نورالحق "مظهري"

۱ – د معدې او کولمو څخه عفونتي اضافه مواد غورځوي.

۲ – معده ورباندي هوسا کېږي.

۳ – روژه د ناروغيو په مقابل کي وقايه ده، ډېري ناروغۍ دي چي بې له وقايې په درملني نه جوړېږي او روژه ډېره ښه وقايه ده.

۴ – څوک چي د کوچنيو او لويو کولمو مزمن التهاب ولري، روژه ډېره ګټه ورته کوي.

۵ – د ينې د کمکارۍ په درملنه کي روژه ډېره ګټه لري.

۶ – د خارش او يا ګرولو ناروغۍ ته روژه ډېره ګټه لري.

۷ – د الرژي يا حساسيت د ناروغۍ په درملنه کي روژه ډېر تأثير لري.

۸ – روژه د چاغښت په ناروغۍ کي ډېره مفيده ده، ځکه چي په روژه نيولو وزن ډېر کمېږي.

۹ – روژه د لوړ فشار کمولو له پاره ډېره مؤثره ده.

۱۰ – روژه د ګوردو (پښتورګو) د ځينو التهابونو په درملنه کي ډېره مؤثره ده.

۱۱ – روژه د کيسه صفراء د التهابونو په درملنه کي ډېره مؤثره ده.

۱۲ – روژه د زړه د مزمنو ناروغيو په ختمولو کي ډېره مفيده ده.

۱۳ – روژه د معدې د ډېرو ناروغيو د درملني لپاره ډېره ګټوره ده.

۱۴ – روژه د انسان په خوشحاله کولو او سپين ږيرتوب په ځنډولو کي ډېر تأثير لري.

عصبي جهاز او سيستم ته د روژې ګټه:

ډاکتر محمد ابوشوک په يوه مقاله کي چي د (الصوم والجهاز العصبي) تر عنوان لاندي يې ليکلې ده وايي: د روژې د روحانيت له امله او په دې خاطر چي روژه نفس صفا او روح پاکوي، پر ستونزو باندي انسان ته تحمل او صبر ور زده کوي، پر مسکينانو او اړو انسانو مهرباني ته انسان هڅوي، په شهوتونو کي د لوېدلو څخه انسان ليري کوي، د انسان نفس په ښو اخلاقو ښايسته کوي، لکه: په کړنو کي صداقت، په کار کي امانتداري، د خښم او انتقام څخه د انسان ليري کول، د حسد او کينې څخه د نفس ژغورل.

دا ټول هغه شيان دي چي بشري روح ته سلامتيا، محبت، دوستي او هغه صفايي وربخښي چي د انسان روح ورباندي ډېر مطمئن او آرام کېدلای سي.

ځينو بريتانوي ډاکترانو ويلي دي: په کال کي يوه مياشت روژه نيول، د انسان په بدن کي د پوره کال کچره او چټلي ختموي.

تر ټولو مشهور ليکوال چي د روژې په فايدو کي يې ليکنې کړي دي، په امريکا کي د بدني ثقافت مشر ماک فادن دی. هغه په امريکا کي په خپل نامه لوی کلېنيک جوړ کړی او د روژې د فوائدو په اړه يې هغه وخت کتاب وليکی چي ده ته په تجربو ثابته سوه چي روژه د ډېرو سختو ناروغيو د درملني له پاره مؤثره ده.

هغه وايي: روژه بدن ته ګټه لري، د ټولو هغو جراثيمو څخه بدن پاک کوي چي له خوړو سره د انسان بدن ته ځي.

هغه ناروغۍ چي په روژه باندي يې معالجه کړي دي:

– د معدې او هاضمي جهاز ناروغۍ.

– د وينو او رګونو ناروغۍ.

هغه ډاکټر په خپل کتاب کي د ټولو هغو خلکو نومونه او مشخصات ليکلي، چي ده په روژه باندي د هغوی درملنه کړې ده.

دی وايي: هر انسان دې ته اړتيا لري چي بايد روژه ونيسي، بلکي هر ناروغ روژې ته اړتيا لري.

منبع: تحف رمضانية

# روژه په ځان کي د غوره عادتونو د خپلولو موقع ده

عبدالقادر "تکين"

د روژې مبارکه مياشت د اسلامي امت له پاره يو ستر نعمت دی چي په اسلام کي د ځانګړي فضيلت او اهميت څخه برخمنه مياشت ده.

روژه چي د اسلام له پنځو فرضي بناوو څخه دريمه بنا ګڼل کېږي، نو د دې بناوو په اړه نبي کريم صلی الله عليه وسلم فرمايي:

ژباړه: اسلام پر پنځو ستونو ولاړ دی، د دې خبري شاهدي ورکول چي د الله تعالی څخه پرته بل څوک د عبادت وړ نسته او نبي کريم صلی الله عليه وسلم د الله جل جلاله استازی دی، د لمانځه سم ادا کول، د زکات ورکول، د بيت الله شريفي زيارت کول او د روژې نيول دي." (رواه البخاري)

د روژې مبارکه مياشت په حقيقت کي د عبادت، فضيلت، رحمت، خواخوږۍ، ځان په لوړو اخلاقو سمبالول او په ټوله کي د الله جل جلاله د پېرزويني مياشت ده.

په دې مبارک مياشت کي هر مسلمان ته لازمه ده چي د خوراک او څښاک تر څنګ، بايد د بدن د ټولو اعضاوو روژه وي او په ځان کي د غوره عادتونو د پيدا کولو هڅه وکړي، ترڅو د عبادتونو د قبوليت تر څنګ، د حقيقي ژوند څخه خوند واخلي.

مسلمانانو ته الله جل جلاله د عبادتونو له پاره داسي فرصت ورکوي چي په دې مبارکه مياشت کي شيطانان په کلکو ځنځيرونو تړل کېږي، د جهنم دروازې تړل کېږي او د جنتونو دروازې خلاصېږي.

دا زموږ له پاره بهترين فرصت دی چي د زړه له اخلاصه عبادتونه په کښې وکړو، خير او ښېګڼه په کښې وکړو او د ټول کال له پاره داسي عبادتي پلان ترتيب کړو چي ټول عمر په پوره معنوياتو سمبال کړو.

د پلان ښه بېلګه دا کېدلای سي چي د عبادتونو له پاره بايد ځانګړی وخت ولرو، د معاملو شرعي طرز اختيار کړو، د اسلامي کورني نظام د استحکام له پاره کوښښ وکړو، ټولنيز نزاکتونه بشپړ رعايت کړو، د بې ځايه ناستو او خبرو څخه ډډه وکړو، د ژوند په ټولو چارو کي د عدالت او انصاف تله وساتو، خپلې رويې ته خاصه پاملرنه وکړو او داسي نور غوره اعمال دي چي موږ يې د عادت له مخي په روژه مبارکه مياشت کي رعايتولای سو او د يوې پاکي ارادې له مخي کولای سو چي په ټول ژوند کي عمل ورباندي وکړو.

راسئ نن قاطع اراده وکړو چي ټول ژوند د روژې مبارکي مياشتي د عبادتونو په څېر کوو، ترڅو آخرت ته په لوړو سترګو او جګ سر ورسو.

الله جل جلاله دي ټولو مسلمانانو ته د عبادتونو او صدقو توفيق ورکړي.

# د روژې هر کلی

انجينر محمد اسلم

لومړۍ برخه

روژه را ورسېدله، کله دي هم فکر کړی دی چي د روژې هر کلی څنګه وکړم، که کړی دي وي، ډېر ښه، که نه، دا ليکنه تر پايه ولوله، امکان لري چي يو څه دي په ذهن کي پرېوځي او هر کلي ته يې ملا وتړې.

د توبې هر کلی:

تر روژې وړاندي که دي هر بد عمل تر سره کړی وي، نو د رمضان المبارک مياشت درته ښه فرصت دی، چي په اخلاص سره الله تعالی ته د نصوحاتو توبه وباسې او په راتلونکي کي بيا له بدو عملونو او کړنو پرهېز وکړې.

د تلاوت هر کلی:

په عادي ژوند کي بايد لږ تر لږه هره ورځ د قرآنکريم د دېرشو سپارو څخه د سپارې يوې برخې تلاوت وکړې او دا کار بايد ورځنی عادت وګرځول سي، خو د رمضان په مياشت کي د قرآن عظيم الشان تلاوت ډېر زيات اجر او ثواب لري، هغه که د تراويحو په لمانځه کي وي او که بې له تراويحو وي، تر خپله وسه بايد کوښښ وکړو چي تر روژې وروسته هم د قرآنکريم تلاوت همداسي جاري وساتو.

د لمونځونو او نفلونو هر کلی:

دا چي بې له روژې زموږ له ځينو اشخاصو په فرضي لمونځونو کي سستي او ټمبلي کېږي، په کار ورته نه ده چي په روژه کي دي همدا عمل تکرار کړي، بلکي په روژه کي دي ملا کلکه ور ته وتړي او د فرضو لمونځونو سربېره دي، نفلي لمونځونه ښه بې شمېره ادا کړي، ترڅو الله تعالی ورته نفل په فرضو او فرض په اولياوو کي شمار کړي.

د صدقو او خيراتونو هر کلی:

ګرانه وروره! مخکي تر روژې به دې صدقې ته زړه نا زړه کېدې، خو د شيطان د چټکي هڅي په نتيجه کي به دې ډېری وختونه زړه نه وي ښه کړی، خو دادی د روژې مياشتي له برکته سرکښه او غټ شيطانان تړلي سوي دي، ښه فرصت يې وګڼه او د زړه له تله په دې د صدقو او خيراتونو مياشت کي، ښې پرېمانه صدقې او خيراتونه وکړه، ځکه چي صدقه او خيرات په دې مياشت کي هغه کليوالي خبره يو په سله اجر او ثواب لري.

همدارنګه نبي کريم صلی الله عليه وسلم فرمايي:

ژباړه: که چيري چا يو روژه نيوونکي ته روژه مات ورکړ، نو صدقه کوونکي ته دومره اجر او ثواب الله تعالی ورکوي، لکه څومره چي روژه نيوونکي ته يې ورکوي.

د صبر او زغم هر کلی:

دا د صبر او زغم مياشت مؤمن مسلمان ته دا درس ورکوي چي مؤمن مسلمان بايد په ټول ژوند کي د صبر او زغم څخه کار واخلي. خپله هم د ژوند په هره برخه کي صبر د ژوند يوه برخه وګرځوي او نورو ته هم بايد د صبر او زغم توصيه او سپارښتنه وکړي.

نور بيا...

# د شیطان لښکر

خوبنونه: شهيد شيخ رحيم الله "حقاني"

(۱۱۱) برخه

## د خوارجو نوي څېره (داعش)

لومړی قول: پر خوارجو باندي د تکفير حکم لګول:

ګڼ شمېر د امت امامان خوارج کافر ګڼي، دا امامان په صحاح سته کي راغلي ګڼ شمېر حديثونو باندي استدلال کوي، کوم چي موږ يې په تېرو مخونو کي يادونه وکړه، دلته موږ يوازي دوه حديثونه رااخلو:

۱ – د حضرت سويد بن غفله رضي الله عنه څخه روايت دی: علي رضي الله عنه فرمايي: ما له رسول الله صلی الله عليه وسلم څخه واورېدل چي فرمايل يې:

ژباړه: په آخري زمانه کي به څه داسي خلک را پيدا سي چي عمرونه به يې کم وي، عقلونه به يې کچه وي، پر ژبه به يې د قرآن او حديث خبري وي، خو هغوی به له دين څخه داسي وځي لکه غشی چي له ښکار څخه وځي، ايمان به يې تر ستوني لاندي نه تېرېږي، چيري مو چي وموندل، نو و يې وژنئ، ځکه د دوی وژونکی به د قيامت په ورځ لوی اجر ومومي.

دا چي لته نبي کريم صلی الله عليه وسلم د دوی د وژلو دومره کلک حکم ورکوي او اجر پري بيانوي، نو دا د دوی د کفر ښکاره اعلان دی.

۲ – د سفيان بن عيينه له لاري د ابو غالب څخه روايت دی چي حضرت ابو امامه رضي الله وفرمايل:

دا خوارج تر آسمان لاندي بدترين وژونکي دي او بهترين مقتولين هغه دي چي دا د جهنم سپي يې مړ کړي، دا خلک به لومړی مسلمان وي، خو د خپل خروج او بغاوت له امله به کافر سي.

د دې حديث دا الفاظ ډېر زيات د غور وړ دي: دا خوارج به لومړی مسلمان وي، خو بيا به د خپلو باطلو عقائدو او نظرياتو له امله کافر سي.

همدا راز دا حديث: "دوی به قرآن لولي، خو تر ستوني به يې نه تېرېږي، له اسلامه به داسي خارج سي لکه غشی چي له ښکار څخه وځي."

هم د دوی پر کفر باندي صريح دليل دی.

د خوارجو پر کفر باندي قايل د څو علماء کرامو فتواوي:

۱ – امام بخاري:

په ټولو مسلکونو او مذهبونو کي منل سوی امام في الحديث امام محمد بن اسماعيل البخاري رحمة الله [م: ۲۳۶ هـ] په خپل صحيح کي مستقل يو ترجمة الباب ايښی او د خوارجو کفر يې ثابت کړی دی. حافظ ابن حجر عسقلاني رحمة الله په دې ځای کي فرمايي:

ژباړه: ټولو هغو علماوو چي خوارج يې کافر بللي دي، لکه: امام بخاري او نور، دوی خوارج د مرتدينو او ملحدينو په ډله کي داخلوي او تأويل کوونکي يې د يو بل باب په ذريعه جلا بيان کړی دی، چي عنوان يې دی: چا چي له خوارجو سره جنګ پرېښود ديو ځای کېدلو له پاره او د دې له پاره چي خلک نفرت ځني و نه کړي.

په دې ښکاره توپير سره امام بخاري دا ښکاره کړه چي خوارج بې له شکه مرتدين دي او د متأولينو(تأويل کوونکو) حکم له دوی جدا دی.

۲ – امام ابن جرير الطبري:

دا پورته پايې تفسير پوه او تاريخپوه امام ابن جرير طبري رحمة الله [ مړ: ۳۱۰ هـ] د خوارجو په اړه فرمايي:

ژباړه: له خوارجو سره جنګ او د هغوی وژل جايز نه دي، مګر وروسته تر دې چي حجت پرې تمام کړل سي، په داسي توګه چي د حق لور ته د بيا راتلو دعوت ورکول سي او د عذر وړاندي کولو يوه موقع ورته برابره سي او امام بخاري په خپل ترجمة الباب کي همدې ته اشاره کړې ده او دا ترجمة الباب د هغه چا له پاره دليل دی چي خوارجو ته کافر وايي او همدا د امام بخاري رحمه الله د صنيع او طرز غوښتنه هم ده ځکه چي ده خوارج له مرتدينو او ملحدينو سره يو ځای کړي او تأويل کوونکي يې جلا ذکر کړي دي.

حافظ ابن حجر عسقلاني رحمه الله د امام طبري رأيه نوره هم واضحه کوي، فرمايي:

ژباړه: امام طبري رحمه الله په تـذهيب الآثار کي د دې باب د احاديثو تر بيانولو وروسته د دې قول: [له اهل قبله څخه هيڅوک هم د اسلام تر قبلولو وروسته نه کافر کېږي، مګر دا چي هغه په دانسته توګه له اسلام څخه ووځي] ترديد کړی دی، ځکه چي دا د نبي کريم صلی الله عليه وسلم دا قول باطل کوي: په حديث کي دي: "دوی يعني خوارج به حق وايي او د قرآنکريم تلاوت به کوي، خو له اسلامه به ووځي او له اسلام سره به يې هيڅ تړاو پاته نه سي."

نور بيا...

# هیمانجیومای دوره شیر خواره گی

عبدالنسیم "صدیقی"

حصه چهارم وآخر

اگر چه ممکن است، بیتا بلاکرها برای هیمانجیوماهای قرحه ای مفید باشد، بدتر شدن قرحه امکان دارد اتفاق بیافتد، که شاید منعکس کننده کاهش جریان خون باشد. اکثر هیمانجیومای شیرخوارگی قرحه ای به خوبی توسط پانسمان های محافظوی غیر چسپنده، انتی بیوتیک های موضعی وسیستمیک که توسط کشت نوع انتان حساس تشخیص شده باشد به خوبی پاسخ میدهد. میکانیزم مشخص فعالیت بیتا بلاکرها به اندازه زیادی نامعلوم است، اما طوریکه معلوم میشود، بهبودی کلینیکی ممکن است، در اثر تقبض اوعیه و کاهش سرعت فاکتورهای pro-angiogenic اتفاق بیافتد.

Pulsed dye laser (PDL) میتواند برای تداوی قرحات مفید باشد، اما ممکن است برای telangiectases واحمرار بعد از بهبودی هیمانجیومای ضرورت شود. معلوم میشود، که استعمال PDL در ابتدای مرحله تکثری هیمانجیومای غیر قرحه ای نتایج خوبی در دراز مدت ندارد، شواهد نشان داده است، که اندفاعات تداوی شده اتروفی یاخسافت (hypopigmentation) رانشان میدهد.

جراحی ممکن است گاه گاهی برای هیمانجیومای شیرخوارگی که درمرحله تکثری قرار داشته و سبب تداخل وظیفوی یا قرحات که با تداوی های دوای جواب نداده ضرورت شود. در مرحله بهبودی، استطبابات جراحی شامل اشکال غیر نارمل به علت تجمع انساج fibrofatty و انحراف یک ساختمان مهم اناتومیک میباشد.

Embolization ممکن است، یک نقش در هیمانجیوماهای تهدید کننده حیات بازی کند، خصوصًا آنهائیکه سبب عدم کفایه احتقانی قلب شده و به تداوی دوای پاسخ نمیدهد.

References:

1- Elisabeth M. H, Mary T. G. Dermatoses and Haemangiomas of Infancy. In: Christopher G, Jonathan B, Tanya B, Robert C, Daniel C, editors. Rooks textbook of dermatology.9th ed.west Sussex:John wiley&suns;2016.vol 4.p.117.16 -117.24

2- William D J, Timothy G B, Dirk M E, Issac M N, editors. Andrews Disease of the Skin.12th ed. Services Manager: Patricia Tannian;2016.p419-422

3- Anita N H, Maria C G. Infantile Hemangiomas. In: Jean L B, Joseph L J, Julie S V, editors. Dermatology. 3th ed. Saunders: elsevir;2012.p.1691-1707

4- Farhana M, Goona N S. Propranolol for the treatment of infantile hemangioma. Journal of Pakistan Association of Dermatologists. 2014;24 (4):312-318: 312-317. Available from: http://www.jpad.com.pk/index.php/jpad/article/view/219

5- Fatemeh L, Pouran L, Behzad A, Mohammad A T, Maryam A M, Ali T. Propranolol for infantile hemangioma. IJN. 2016; 7 (4): 17-20. Available from: http://ijn.mums.ac.ir/article_7648_f4b66009367647be47e078213f17e7d0.pdf

6- Alexander K C L, Benjamin B, Kam L H. pediatrics and neonatal nursing. Open Journal. 30hApril, 2014; 1(1): 1-6. Available from: https://www.researchgate.net/publication/273494614

پایان

# د ذهن پوخوالی

ژباړه: سميع الله "دراني"

د ذهن پوخوالی په تجربو سره راځي. د ذهن پوخوالی له عمر سره تعلق نه لري، له تجربې سره تعلق لري، ځکه ځيني سپين ږيري وي، خو بيا يې هم په ځينو کارونو سر نه خلاصېږي، خو برعکس يو ځوان به وي، خو په هغه کار کي به مهارت لري.

زموږ ژوند اوس داسي سرچپه او پېچلی روان وي، چي د ژوند په ټولو معاملو کي انسان د ذهن پوخوالی نه سي حاصلولای.

که غواړی چي ذهن مو پوخ سي، د هغه کار ژوره مطالعه وکړئ. معلومات حاصل کړئ. بيا هغه معلومات تجربه کړئ، له خپلو غلطيو سبق واخلئ، خو دا غلطي بيا مه تکراروئ. په دې سره به ستاسو ذهن پوخ سي، ځکه محمد صلی الله عليه وسلم ويلي دي:

"يو مؤمن بايد له يو غاره دوه واره و نه چيچل سي."

هوښياران خلک له خپلو تجربو فايدې پورته کوي.

د تجربې هيڅ نعم البدل نسته. که چيري هر ساينس پوه د يو تحقيق له پاره د تيرونو ايجاد کولای، بيا به ساينس ترقي دومره نه کولای. نو د بل له تجربو فايده واخلئ، پرمختګ وکړئ او روان سئ!

## شعر او آدب

# د طلوع زريني وړانګي

## نعت شريف

محسن احسان

نن مي نيت کړی درځمه مدينې ته
ما قبول کړه ستا و پاکي شنې روضې ته

پر زړګي باندي مي پروت عجبه رعب دی
زه به څنګه سم حاضر ستا و حجرې ته

ګناه ګاره امتي دي يم حبيبه
خپله غاړه مي ده ايښې و توبې ته

دا به کوم کيف وي چي ګرځم ستا کوڅو کي
چي ورځمه دا اصحابو هديرې ته

زه "محسنه!" خپل خيالاتو ومه وړی
پوره څوارلس پېړی وړاندي زمانې ته

## غزل

عفان

د غايي حکم عينه دِ مغيا ده
حکم يي يو دی خو لکن سره جلا ده

که څوک خبره د اسلام کړي تر قيامته
دغه خبره سمه نه ده بې معنی ده

الله يو دی انحصار د وحدت مه کړه کي
په دې صفت باندي څوک نسته چي الله دی

اسلام، مذهب او شريعت داسي قانون دی
که کار ګنا وي هم کول يي هم روا ده

د اسلام کار کي عقل نه چلېږي ګرانه!
مسح په موزو ګوری لاندي نه اعلی ده

ګناه سبب د جهنم ده ای "عفانه!"
داسي وخت هم سته چي ثواب مي د ګنا ده

## غزل

احمد "بريالي"

خواره د ګېډې په کومک خلاصېږي
تل دوامداره بې درک خلاصېږي

دا خېټور د زمان غوړه خوري خو
مګر مايه په ناخونک خلاصېږي

خاص په سوچو او دعا نه کېږي تل
احتياج د ګټې په مدرک خلاصېږي

چي دا وبو څخه يې کښلي وي نو
په غورځېدو کله سمک خلاصېږي

خلک د جنګه څخه تېښته کړي خو
چيري له مرګه په تلتک خلاصېږي

په تحقيقاتو موضوع پاکه سي دا
غوټه د زړه کله په شک خلاصېږي

د روزی لاره د وخت بنده وي خو
د هر سړي په عزم کلک خلاصېږي

څه خارګير غواړي "بريالي احمده!"
انګور د لاري تل کورک خلاصېږي

Tolo E Afghan Journal

طلوع افغان مدیریت له ټاکلي لیکنیز معیار سره سم، د لیکنو په اصلاح کي د لاسوهني حق لري.

ګرانو لوستونکو! په ډېر احترام هیله کېږي، چي دا سپېڅلي پاڼي بې ځایه و نه غورځوئ!

## د ګڼون کوونکو له پاره خبرتیا!

د طلوع افغان تاریخي خپرونه چي د هیواد په مطبوعاتي تاریخ کي ځانګړی ځای لري. که غواړئ چي د لمریز کال په آخر کي د طلوع افغان تاریخي ورځپاڼي یو بشپړ کلکسیون ولرئ، نو په طلوع افغان ورځپاڼه کي ګڼون وکړئ.

د ګڼون کلنۍ بیه ۵۰۰- پنځه سوه افغانۍ، زده کوونکو او محصلینو ته د تصدیق په وړاندي کولو سره نیمه بیه ټاکل سوې ده. اداره

مســــئول مــدیر: ـــــــ بـریـالـی "فیـضي"

د تصـحیح مسئــــول: ـــــــ حاجي عبدالله "ذاکري"

کمــپوز او ډیــــزاین: ـــــــ نصیر احمـد "صـــابر"

د مـــــدیریت شمېره: ـــــــ ۰۷۰۵۶۰۸۶۷۳

د توزیع مدیریت شمېره: ـــــــ ۰۷۰۰۴۹۱۴۳۶

پتــه: ـــــــ علامه حبیبي واټ–اطلاعات او فرهنګ ریاست

د بریښنالیک پته: ـــــــ Afghan.tolo@yahoo.com

Established in 1300 Hijri — ISSue: 74 — Founded in 1921

# اعلانونه او خبرتیاوې

**(۱) مخ پاته: د څه کم درو میلیونو...**

د خوړو او کرهني سازمان په مالي ملاتړ، د کندهار ولایت د اوبو او انرژۍ ریاست تر څارني لاندي ترسره کېږي او یو شمېر کسانو ته په کښبي د کار زمینه هم برابره سوې ده.

**(۱) مخ پاته: د خرما او ماڼو نیالګیو...**

په قول، د ولایت مقام په هلو ځلو له ننګرهاره ۲۱۰۰ نیالګي راوړل سوي، چي د یاد ریاست د تحقیقاتي فارم تر څنګ به، د انار باغ، قوریه جاتو او یو شمېر بزګرانو ته د ښهونو جوړولو له پاره وېشل کېږي.

هغوی زیاتوي، هڅه کوي د نوو ارزښت لرونکو نیالګیو کرهنه ترویج او تکثیر کړي، څو د سیمي کرهنیز سکتور ته وده ورکړي.

د یو بل خبر له مخي، په فراه ولایت کي د نیالګیو کښېنولو ملي کمپاین د یاد ولایت د والي مولوي غوث الدین رهبر او ځایي مسئولینو په شتون کي پیل سوې.

د فراه ولایت د چاپېریال ساتني رئیس حافظ برهان الدین راشد ویلي، د دې کمپاین له لاري د چاپېریال ساتني، کرهني ریاستونو او همکارو مؤسسو په همکارۍ ۵۵ زره د خرما او زیتون نیالګي کښېنول کېږي.

په ورته وخت کي د فراه ښاروالۍ د سمسورتیا مدیریت مسئول احمد جواد ویلي، د یاد مدیریت له خوا به د ښار په بېلابېلو برخو، پارکونو او بلوارونو کي تر ۱۰ زره زیات ګلان، مېوه لرونکي او بې مېوې نیالګي کښېنول سي.

**(۱) مخ پاته: د بورې فابریکه بیرته...**

برابر پړي، بلکي د هیواد اقتصاد ته هم وده ورکوي.

د یادي فابریکي اجرائیوي مسئول ډاکټر نجیب الله دوراندېش ویلي، د بورې دغه فابریکه کولای سي په ۲۴ ساعتونو کي له ۷۰۰ تر ۸۰۰ ټنه بوره تولید کړي.

هغه د خامو موادو کمښت، د فابریکې د عمده ستونزو له ډلي یاد کړ او زیاته یې کړه: "که موږ ته لازم خام مواد برابر سي، کولای سو فابریکه درې میاشتي پر له پسې فعاله وساتو، چي د هیواد د بورې یوه لویه برخه اړتیا به پوره کړي."

د دوراندېش په وینا، دا مهال ۶۰ کسان په مستقیم ډول او ۳۰۰ تنه په غیر مستقیم ډول له دې فابریکې سره کار کوي او په خبره یې، د بغلان بوره د کیفیت له پلوه تر هغي بورې غوره ده، چي د بهر څخه هیواد ته وارد یږي.

باید وویل سي، یاده فابریکه په ۱۳۱۹ ل کال کي فعاله سوې وه، خو په ۱۳۷۱ ل کال کي د کورنیو جګړو له امله یې فعالیت دریدلی او اوس د اسلامي امارت تر بریا وروسته، د فابریکې د بیا رغولو چاري بشپړي سوي او سږ کال یې تولید بیرته پیل کړی دی.

**(۱) مخ پاته: د کوکنارو له کښته...**

د جمشید په قول، په یاده موده کي د نشه یي توکو په وړاندي د مبارزې مدیریت له لوري، د کندهار ولایت په یو شمېر حوزو او ولسوالیو کي د نشه یي توکو پر ضد ۴۹ عملیاتونه ترسره سوي دي.

د هغه په وینا، د یادو عملیاتو په لړ کي ۱۲ تنه تورن کسان، ۱۵ ګرامه هېروئین، ۱۰۵ ګرامه ښیښه، ۱۲۰ داني ټابلیټ کا ګولۍ، ۴۰۴۱۸ داني زیکپ ټابلیټ ګولۍ، ۶۸۹ کیلو ګرامه چرس او ۸ سیټه موبایلان نیول سوي دي.

**(۱) مخ پاته: د دوحې تړون له د...**

دا مذاکرات چي په یوولس بېلابېلو پړاوونو کي ترسره سول، په پیل کي امریکایي اشغالګرو یوازي د جګړې ګټلو د یو تاکتیک په توګه کارول او غوښتل یې چي اسلامي امارت کي انشعاب رامنځته کړي او د تبلیغاتو په برخه کي استفاده څني وکړي او دوی په دې امید ول چي د جګړې په ډګر کي بریالي امارت په سیاسي ډګر کي ماته ورکړې، خو کله چي د افغان مجاهدینو د جهاد سنګرونه لا هم مستحکم پاته ول او د اشغالګرو د تابوتونو لړۍ نوره هم دوامداره او ګړندۍ سوه، په پوځي عملیاتو کي په مسلسل ډول له ماتي سره مخ ول او د مذاکراتو پر مېز یې د اسلامي امارت د مشرانو سیاسي پوهه او بصیرت درک کړ، نو امریکا دې نتیجې ته ورسېدله، چي د امپراطوریو هدیره کي د انګرېز او شوروي اتحاد له برخلیک سره مخامخ کېدونکې ده، په دې وجه یې په واقعي ډول مذاکراتو ته غاړه کښېښووله او د افغانستان څخه د وتلو له پاره یې په اصطلاح د اوړو پـزي جوړولو له پاره دا مذاکرات خپل حتمي مجبوریت وګاڼه.

د نن څخه ۲۳ کاله وړاندي د امریکا په مشرۍ نړیوال کفري ائتلاف پر ته له دې چي د چنګېز، انګرېز او وارسا تاریخ مطالعه او له برخلیکه یې د عبرت درس واخلي، پر غریب او مسلمان افغانستان د دې هدف له پاره چي دلته د اسلامي نظام لمر ډوب کړي، داسي وحشي اشر وکړ چي د بشریت په معاصر تاریخ کي د دې وحشت او بربریت ساری نه وو لیدل سوی، د B52 طیارو او نورو پر مختللو راکټونو او اسلحو په لمبو یې د دې مظلوم ملت خلک وسوځول، مدرسې، مسجدونه او مکتبونه یې بمبار کړل، غربي ترهګرو د شپې په چاپو وهلو زموږ د باعفته بې ګناه خویندو، مېندو او ماشومانو زړونو کي داسي بېره خپره کړله، چي خاوند، زوی، ورور او پلار به یې د دوی په مخ کي په نیمه شپه په سرو وینو ولمبول.

کله چي د مردخېز افغانستان شا زلمي د وخت پر ابرهه د ابابیل په څېر سیلونه – سیلونه ورنازل سول، غربي لښکري یې داسي تارومار کړې چي له هغه طالب سره د مذاکراتو پر مېز کښېناستلو ته اړ کړل سول چي مخکي یې د مځکي پر مخ د ژوند حق هم نه ورکاوه.

لنډه دا چي د اوږدو مذاکراتو په پایله کي غربي تېریګرو خپله ماته او د غیرتي افغانستان څخه وتل یې په خپل لاس تائید او امضاء کړه. د دوحې تړون نه یوازي دا چي د افغانستان په بشپړه آزادي او د موجوده سوچه اسلامي نظام په حاکمیت منتج سو، بلکي د امت د تېر برم د اعادې هیلي هم ورسره راژوندۍ او اسلامي نړۍ کي د استعماري او استبدادي رژیمونو په وړاندي په جهادي خوځښتونو کي هم نوی روح پو کړل سو چي د بریا زېری او مثبتي نتیجې یې وخت پر وخت مشاهده کېږي.

د دوحې تړون چي د افغانستان په معاصر تاریخ کي د ویاړ او افتخار یو زرین باب او د موجود اسلامي نظام د راتګ زمینه ساز، پیلامه او د غربي ښکېلاک څخه د ګران هیواد د آزادۍ پیل ګڼل کېږي، ټولو افغانانو ته دي مبارک وي.

د اسلامي نظام د استحکام او د مسلمان امت د اتحاد په هیله!

# ټولنیزې رسنۍ

**احمد ظاهر "رشال":**

څوک چي خپله غوسه کنټرول او وزغمي، په داسي حال کي چي د انتقام توان ولري، الله جل جلاله به یې د قیامت په ورځ، د ټولو مخلوقاتو په وړاندي را وغواړي او اختیار به ورکړي چي د حورو د ډلي هره یوه چي وغواړي، غوره یې کړي.

(ابوداود: ۴۷۷۷–ترمذي: ۲۰۲۱)

**Nisar Samad Wasifi**

فاسد سیاست:

خاموشي او سکوت هم یو سیاست دی، چي د بحران او زیان څخه دي ساتي!

**بشیر احمد "الحنفي":**

که په تا د خلکو ستر خوندي نه دی، نو ستا ستر هم په خلکو خوندي نه دی!

**حسیب "نورمل":**

ښایي د یو کار پیل سخت وي، خو هیله او تمه بیا دا وي چي پای به یې ښکلی وي.

(ژباړه: نورمل)

**Niamatullah Shakir:**

مسلمانه!

سترګي باید دونه بې ارزښته نه سي، چي هر څه په ووینې!

غوږونه باید دونه بې ارزښته نه سي، چي هر څه په واورې!

لاسونه باید دونه بې ارزښته نه سي، چي هر څه په ونیول یا واخیستل سي!

پښې باید دونه بې ارزښته نه سي، چي هر چیري ولاړې سي!

ژبه باید دونه بې ارزښته نه سي، چي هر څه په وویل سي!

خوله باید دونه بې ارزښته نه سي، چي هر څه په وخوړل یا وڅښل سي!

**ختیځ نوروز:**

د زړه آرام؛ د قناعت په سیوري کي پیدا کېږي!

**Numan Dost:**

قرآني مرغلره:

ځیني لویان (د مقام په اساس، د شتمنۍ او زور په اساس او یا د علمیت... په اساس) داسي فکر کوي چي که له ځانه د ټیټو خلکو سلام او درناوي ته ارزښت ور نه کړم، توجه ور ته و نه کړم او په کیسه کي یې نه سم؛ نو دا به مي شان او شوکت لوړ وښیي.

خو، های – های!

دوی په ګمراهۍ کي دي. دوی له الهي حکم سره په ټکر کي دي او بې شکه چي دا ډول ټکر ډېر خطرناک وي.

الله جل جلاله فرمایي:

ژباړه: کله چي چا تاته درناوی وکړ، سلام یې درته وکړ، نو له هغه هم په ښه توګه یا هماغسي جواب ورکړه!

یا ربه موږ ټولو ته هدایت!